

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی يې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پاميريان، نورستانيان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ايماق، هم پشه يان
دا هېواد به تل ځلېږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سينه کې د آسيا به
لکه زړه وي جاويدان
نوم د حق مو دی رهبر
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** مدني زده کړې

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د مدني زده کړې د دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اووم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه يې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# سرلیکونه



# لومړی څپرکی

## زموږ اړتیاوې

**په دې څپرکي کې دا لاندې لوستونه لولئ.**

- موږ کومې اړتیاوې لرو؟ (۱)
- موږ کومې اړتیاوې لرو؟(۲)



# د څپرکي موخې

هيله ده چې زده کوونکي د دې څپرکي تر لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:

- د انسانانو غوره مادي اړتياوې درک کړي،
- د مادي اړتياوو د لاس ته راوړلو سر چينې او د هغوی د ساتنې ضرورت وپيژني،
- غوره غير مادي اړتياوې و پېژني،
- د خدای (جل جلاله) او دخلکو تر منځ اړيکې وپېژني.





# مور کومې اړتیاوې لرو؟(۱)



## خبرې پرې وکړئ!

زموږ په هېواد کې ډېر غرونه، ځنګلونه، سیندونه او معدنونه شته. په دې هکله خبرې وکړئ چې دا طبیعي سرچینې زموږ لپاره څه ګټې لري او کومې اړتیاوې مو پوره کوي.

انسان یو اړ موجود دی. زموږ اړتیاوې مختلف ډولونه لري، د دې اړتیاوو له ډلې څخه یوه برخه مادي اړتیاوې دي. خدای ﷻ موږ ته د دې اړتیاوو د پوره کولو لپاره خاصې سرچینې په واک کې را کړې دي، لکه: غر، سیند، ځنګل، لمر او کان (معدن). موږ دې سر چینو ته چې په طبیعي چاپېریال کې شته، اړتیا لرو ځکه د دې لپاره چې ژوندي پاتې شو؛ اوبو، هوا ، رڼا، خوړو، پوښاک او استوګنځي ته اړتیا لرو، نو د دې اړتیاوو د پوره کولو په اړه له نورو سره تړلي یو. هغو توکو ته چې اړتیا لرو کله په زیاته پیمانه په طبیعت کې موندل کېږي. لکه هوا، رڼا او کله بیا په لږه پیمانه موندل کېږي، لکه: خواړه، کالي او استوګنځي چې د هغو د موندلو لپاره باید کار اوهڅه وشي.

## غور پرې وکړئ!

څرنګه چې ومو ویل خدای ﷻ موږ ته د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره ډېرې طبیعي سر چینې را په برخه کړې دي. ستاسې په نظر: دا سر چینې نه ختمیدونکې او تل پاتې دي؟ د دې سر چېنو د له منځه تللو په پایله کې به له کومو ستونزو سره مخامخ شو؟ بټولنه د دې سر چینو د ساتنې لپاره کوم کارونه باید سر ته ورسوي؟ د طبیعت د ساتنې لپاره ستاسې دنده څه ده؟

موږ د خپلو مادي اړتیاوو د پوره کولو لپاره ، طبیعت ته اړتیا لرو. د غره له تیږو څخه په کار اخیستلو خپل ځان ته کور جوړوو، له معدنونو څخه د هر ډول فلزاتو په را ایستلو سره د اړتیا وړ لوښي او وسایل جوړوو، له وښو او ځناورو څخه د اړتیا وړ پوښاك او خواړه تیاروو، خو دا سرچینې همیشنۍ او تل پاتې نه دي، د بیلګې په ډول: د اوبو کموالی د هغو ستونزو له ډلې څخه دی چې نن ورځ د نړۍ ټول خلك ورسره مخامخ دي. د ځنګلونو له منځه تلل یوه له هغو ستونزو څخه ګڼل کېږي چې د سیلابونو د بهیر زیاتوالی، طبیعت او انسانانو ته د ډول ډول زیانو نو سبب ګرځي. موږ ټول دا دنده لرو چې د طبیعت په ساتنه کې هڅه وکړو، ځکه موږ انسانان د خدای ﷻ او د هغه طبیعت په وړاندې چې زموږ په اختیار کې یې را کړي دی، ذمه واري لرو. له همدې کبله موږ باید هڅه وکړو چې طبیعت د خدای ﷻ د امانت په توګه و ساتو او د اوسنیو اړتیاوو د پوره کولو په ترڅ کې باید د راتلونکو په فکر کې هم واوسو، ځکه هغوی هم دې طبیعت ته اړتیا لري.



### دلوست تکرار

- انسان یو اړ موجود دی.
- د انسان د غوره اړتیاوو له ډلې څخه یو هم د هغه مادي اړتیاوې دي.
- ځینې مادي اړتیاوې مو په طبیعت کې په ډېره پیمانه پیدا کېږي، لکه: هوا او رڼا.
- ځینې مادي اړتیاوې، لکه: خواړه، کالي او استوګنځي. باید د کار او فعالیت پواسطه له طبیعت څخه لاس ته راوړو
- موږ خپلې مادي اړتیاوې له طبیعت څخه پوره کوو.
- موږ باید د طبیعت او د هغه له سرچینو څخه ساتنه وکړو.



### پوښتنې

۱. د انسان غوره مادي اړتیاوې کومې دي؟
۲. آیا طبیعت زموږ مادي اړتیاوې پوره کوي او که غیر مادي اړتیاوې؟ څرګند یې کړئ.
۳. د طبیعت په وړاندې زموږ دنده څه ده؟



### کورنۍ دنده

د کورنۍ له یوه غړي څخه پوښتنه وکړئ چې د ډوډۍ د تیارولو لپاره د کومو چارو سرته رسولو ته اړتیا لرو؟

# موږ کومې اړتیاوې لرو؟(۲)



## فکر وکړئ او ځواب ورکړئ!

تاسې د یوه تنکي ځوان په توګه چې د ژوندانه د پیل په لومړي پړاو کې یا ستئ هر ومرو مو د خپلې راتلونکې په هکله هم فکر کړی دی نو:

۱- کومې موخې مو د خپلې راتلونکې لپاره په نظر کې نیولې دي؟ نوم یې واخلئ!

۲- ستاسې ټولې موخې د مادي اړتیا وو د پوره کولو لپاره دي او که نورې اړتیاوې هم لرئ؟ که یې لرئ، نوم یې واخلئ!

۳- تاسې خپلو موخوته د رسېدو لپاره څه شي ته اړتیا لرئ؟

موږ پر مادي اړتیاوو سربېره غیر مادي اړتیاوې هم لرو. غیر مادي اړتیاوې هم مختلف ډولونه لري چې مهم ډولونه یې دا دي:

### الف: د پېژندنې پوهه

موږ د یو انسان په توګه د پېژندنې پوهې ته اړتیا لرو. د څه شي پېژندنه؟
هغه مهم شیان چې موږ د هغو پېژندنې ته اړتیا لرو په لاندې ډول دي:

### ۱-ځان پېژندنه

موږ باید خپل ځان و پېژنو چې څوک یو؟ کومې پیاوړتیاوې او کومې نیمګړتیاوې لرو؟

موږ باید خپل قوت او کمزورتیا و پېژنو چې و کولای شو خپلو اخلاقو او کړو وړو ته سمون ورکړو.

### ۲- د ژوندد نړۍ پېژندنه

د نړۍ او د هغې چاپېریال پېژندنې ته چې ژوند پکې کوو، اړتیا لرو. د دې پېژندګلوۍ په رڼا کې کولای شو د خپل ژوند شرایط څرنګه چې وغواړو، جوړ او بدلون ورکړو. دا چاپېریال له طبیعي چاپېریال او ټولنیز چاپېریال څخه عبارت دی.

### ۳- د نړۍ او انسان د پیدا کوونکي الله (جل جلاله) پېژندنه

انسان د یوه آګاه او پوه موجود په توګه د خپل ځان او چاپېریال په پېژندنه بسنه نه کوي؛ بلکې هڅه کوي چې خپل پیدا کوونکی ( خالق) او پالونکی هم و پېژني.

**خبرې پرې و کړئ**

لاندې پوښتنې په ځیر سره ولولئ او د هغوی په باره کې یو له بل سره خبرې و کړئ.

۱-آیا تر اوسه یوازې پاتې شوي یاستئ؟

۲-په دې شیبو کې موخه احساس درلود؟

۳-څه فکر کوئ چې کومې اړتیاوې تا سوته د دې احساس د پیداکیدو لامل وګرځیدې؟

### ب: د اړیکو درلودل

د انسان د غیر مادي اړتیاوو له ډولونو څخه یو ډول یې هم د اړیکو درلودلو ته اړتیا ده. انسان نشي کولای په یوازې ډول خپل ژوند ته دوام ورکړي. هغه اړیکې چې انسان ورته اړتیا لري کله د خدای (جل جلاله) سره دي او کله هم له نورو انسانانو سره.

### ۱- د خدای (جل جلاله) سره اړیکې

موږ د ژوند په هره شیبه کې دې ته اړتیا لرو چې له لوی خدای (جل جلاله) سره اړیکه و لرو. له لوی خدای (جل جلاله) سره زموږ اړیکه د لمونځ، دعا او عبادت له لارې نیول کېږي. د لوی څښتن تعالی سره راز او نیاز موږ د یوازېتوب، پرېشانۍ او نا امیدۍ له احساس څخه ژغوري او موږ ته هوسایي را بښي، کله چې له ستونزو سره مخامخ شو او احساس وکړو چې هېڅ یو انسان نه شي کولای له موږ سره مرسته وکړي، نو موږ ته دا درک پیدا کېږي چې یوازې لوی خدای (جل جلاله) دی چې مرسته را سره کوي او ستونزې مو له منځه وړي. هغه څوک چې په خدای (جل جلاله) ایمان لري او هر کار د ده په یاد او نوم پیل کوي، باور لري چې خدای (جل جلاله) په ټولو شېبوکې د دوی ساتونکی او مرستندوی دی.



## ۲- له نورو انسانانو سره اړيکې

انسانان ټولنيز موجودات دي او يو له بل سره د اړيکو د درلودلو اړتيا لري. موږ له يوې خوا د مادي اړتياوو د پوره کولو لپاره د نورو همفکرۍ او مرستې ته اړتيا لرو او له بلې خوا د خپلو عاطفي اړتياوو د پوره کولو لپاره له نورو سره مينه او محبت کوو. انسانان يو له بله سره ډېرې اړيکې لري او هر څوک په ټولنه کې يو کار سرته رسوي چې په دې توګه يو له بل سره مرسته او همکاري کوي، ترڅو وکولای شي خپلې اړتياوې پوره کړي.

نو دې نتيجې ته رسيږو چې نشو کولای يوازې او ليرې له ټولو انسانانو څخه ژوند وکړو.

### د لوست تکرار

موږ له مادي اړتياوو څخه پرته نورې اړتياوې هم لرو.

- د انسان د غير مادي اړتياوو يو ډول يې د پېژندګلوۍ اړتياده : ځان پېژندنه، د طبيعي او ټولنيز چاپېريال پېژندنه او د خدایﷻ پېژندنه چې د موجوداتو خالق او پيدا کوونکی دی.
- اړيکوته اړتيا هم د غير مادي اړتياوو يو ډول دی. موږ اړتيا لرو چې د خلکو سره اړيکې و لرو، ترڅو زموږ مادي او عاطفي اړتياوې پوره شي. همدارنګه اړتيا لرو چې د خدایﷻ سره هم اړيکې ولرو چې له هغه څخه په ټولو کارونو کې مرسته وغواړو.

### پوښتنې

۱ له غير مادي اړتياوو څخه د يو څو نومونه واخلئ.
۲-ولې د نورو سره د اړيکو لپاره اړتيا لرو؟
۳-انسان کولای شي چې په يوازې ډول خپلې ټولې اړتياوې پوره کړي؟
٤-ولې انسان دې ته اړ دی چې له خدایﷻ سره اړيکې ولري؟

### کورنۍ دنده

خدایﷻ په قرآن کريم کې فرمايلي دي :(يَا اَيُّهَا النَّاسُ اَنتُمُ الْفُقَرَاءُ إِلَى اللّٰهِ وَاللّٰهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ)

د ښوونکي صاحب يا د جومات د ملا امام صاحب په مرسته دا لاندې فعاليت سرته ورسوئ!

۱. د آيت شريف معنا وليکئ.

۲. دا آيت شريف د مادي او غير مادي اړتياوو سره څه تړاو لري؟ پايله يې په خپلو کتابچو کې وليکئ او په ټولګي کې يې ولولئ!

# د لومړي څپرکي لنډيز

• انسان يو اړ موجود دی. خدای تعالی طبيعت انسانانو ته د اړتياوو د پوره کولو لپاره په اختيار کې ورکړی دی.

• زموږ دنده ده چې د طبيعت په ساتنه کې هڅه وکړو.

• د اړتياوو بله برخه مو غير مادي اړتياوې دي، ځان پېژندنه، د نړۍ پېژندنه او د خدایﷻ پېژندنه، د اللهﷻ او له ټولو انسانانو سره اړيکې د انسان له غوره غير مادي اړتياوو څخه ګڼل کيږي.

# دویم څپرکی

## کورنۍ

په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولئ:

- ولې مونږ کورنۍ ته اړتیا لرو؟
- څنګه کولی شو یوه بریالۍ کورنۍ ولرو؟ (۱)
- څنګه کولی شو یوه بریالۍ کورنۍ ولرو؟ (۲)



# د ښېرکي موخې

له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې د دې ښېرکي تر لوستلو وروسته په لاندې موخو باندې بر لاسی پیدا کړي.

- په ژوندکې د کورنۍ اهمیت درک کړي،
- هغو چارو ته چې کورنۍ یې موږ ته سرته رسوي، پاملرنه وکړي،
- د یوې بریالۍ کورنۍ له ځانګړتیاوو سره آشنا شي،
- وکولای شي د کورنۍ په بریاوو کې مرسته وکړي.





# ولې مور کورنۍ ته اړتيا لرو؟



## خبرې پرې وکړئ!

د لاندنيو پوښتنو په اړه خبرې وکړئ.

- که چېرې کورنۍ نه وای، موږ به څنګه ژوند کاوه؟
- ستاسې په کورنۍ کې کوم کسان ژوند کوي؟

څرنګه چې په مخکنيو درسونو کې مو ولوستل، انسان يو اړ موجود دی. د بشر له غوره اړتياوو څخه يوه دا ده چې هغه نه شي کولای له نورو پرته ژوند وکړي. انسان د زېږد له پيله کورنۍ ته اړتيا لري، ځکه نه شي کولای د کورنۍ له څارنې پرته ژوندی پاتې شي. کله چې لوی هم شي پلار او مور خواړه، کالي، استوګنځی او د هغه امنيت تأمينوي، ترڅو ښوونځي ته لاړ شي او درس ولولي. مشرانې خويندې، ورونه او د کورنۍ ټول مشران غړي هر يو له ده سره په لوستونو او شخصي چارو کې مرسته کوي.

## غور پرې وکړئ!

څرنګه چې وويل شول کورنۍ له خپلو ماشومانو څخه د زېږد له پيله څارنه کوي او د خپلو غړو لپاره خواړه، کالي او استوګنځی تياروي، ستاسې په آند:

۱. آيا دا څارنه يو ازې د ماشوم توب په دوران پورې اړه لري؟

۲. کورنۍ د خپلو غړو لپاره نور کوم کارونه سرته رسوي؟

کله چې انسان نړۍ ته سترګې پرانېزي، خبرې کول، ګرځېدل، ادب او له خلکو سره د ژوند کولو په طریقه نه پوهېږي. ورو ورو چې لویېږي، له خپل مور او پلار او د کورنۍ له نورو ټولو غړو څخه خبرې کول چې د ژوند له لومړنیو ګامونو څخه شمېرل کېږي، زده کوي او له نورو سره د چلند آداب زده کوي، په دې معنا چې نوموړې د ټولنیز له نظره روزل کېږي . همدارنګه کورنۍ د خپلو ټولو غړو ننګه او ساتنه کوي، خواړه، کالي د زده کړې مصرف او د هغوی ټولې مادي اړتیاوې پوره کوي، د هغوی عاطفي اړتیاوې په خوښۍ، صمیمیت او مینې کولو سره پوره کوي او کله چې له کومې ستونزې سره مخامخ شي لارښوونه او مرسته ورسره کوي. په دې مالي او عاطفي مرستو او څارنو کې هم ماشومان او هم مور او پلار شاملېږي. باید په یاد ولرو چې زموږ همزولي ټول هلکان له خپلې کورنۍ سره ژوند نه کوي، ډېرې پېښې کیدای شي د دا ډول مسئلود منځته راتلولامل وګرځي له دې کبله ممکنه ده چې له خپلوانو څخه او یا د ټولنې د نورو غړو له ډلې یو څوک د ده د مور او پلار ځای ونیسي او پالنه یې وکړي، په پایله کې انسان یوازې نه پاتې کېږي او د هغه مادي او عاطفي اړتیاوې د نورو کسانو په وسیله پوره کېږي.

## د لوست تکرار(۱)

- انسان د زېږد له پیله کورنۍ ته اړتیالري.
- ----------------------------------------------------------------
- ----------------------------------------------------------------
- ----------------------------------------------------------------
- ----------------------------------------------------------------
- ----------------------------------------------------------------

## پوښتنې

۱. انسان کورنۍ ته کومې اړتیاوې لري؟
۲. کورنۍ ستاسې کومې اړتیاوې پوره کوي؟
۳. مشران کورنۍ ته کومې اړتیاوې لري؟
٤. کورنۍ کوم شیان ماشوما نوته ورښیي.

## کورنۍ دنده

تاسې ولوستل چې کورنۍ د بچیانو په وړاندې کومې دندې لري: ستاسې په فکر بچیان د کورنۍ په وړاندې کومې دندې لري؟ په دې باره کې له خپلو همزولو سره خبرې وکړئ او پایله یې په ټولګي کې ولولئ!

(۱) ګرانو زده کوونکو: له دې وروسته د ښوونکي په مرسته لوست را لنډ کړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

# څنګه کولای شو يوه بريالۍ کورنۍ ولرو؟ (۱)



## خبرې پرې وکړئ

څرنګه چې د لوست له سرليک څخه څرګندېږي. دا لوست د يوې بريالۍ کورنۍ په هکله دی. ستاسې په اند يوه بريالۍ کورنۍ بايد کومې ځانګړتياوې ولري؟ په دې لوست او په راتلونکي لوست کې موږ د کورنۍ ځينې ځانګړتياوې لولو:

### د مسؤوليت (ذمه وارۍ) احساس

د دندې عملي کول د يوه ذمه وار کس ځانګړتيا ده . کله چې يوه دنده يا چاره چا ته سپارل کېږي، بايد د هغه کار د سرته رسولو لپاره د ذمه وارۍ احساس ولري. دا احساس د دې سبب ګرځي چې هغه کس خپل کار په زړه سوي او علاقمندۍ سرته ورسوي.

هرومرو تاسې په وار وار ليدلي دي چې مور او پلار مو حتى د ستومانۍ، ناروغۍ او نورو ستونزو سره سره د خپلو بچيانود اړتياوو د پوره کولو لپاره هڅه کوي. تاسې د يوه اولاد په توګه، په داسې شېبو کې د دوی په وړاندې څه احساس کوئ؟

صميميت، خلوص او مهرباني د کورنۍ هغه ځانګړتياوې دي چې د کورنۍ غړي يو د بل په وړاندې د مسؤوليت احساس ته هڅوي.



## گډ ژوند ( همکاري)

پوهېږو چې په هره کورنۍ کې څو کسان ژوند کوي. ستاسې په کورنۍ کې یو کس ټولې چارې سرته رسوي او که ټول غړي د کارونو په سرته رسولو کې برخه اخلي؟ که چېرته ټولې چارې یو کس سرته ورسوي، له کوموستونزو سره به مخامخ شي؟ که چېرې د کورنۍ ټول غړي د چارو په سرته رسولو کې له یو بل سره مرسته وکړي، چارې په بېړه سرته رسېږي او په یو کس فشار نه راځي. که چېرته له یو بل سره مرسته ونشي یو شمېرکسان بېکاره پاتې کېږي او یو شمېر کسان باید زیاتې چارې سرته ورسوي. غوره کار داد ی چې که چېرته د کور کارونه د کورنۍ د غړو تر منځ وویشل شي، نو د کورنۍ ټول غړي به خپلې دندې وپېژني او یو له بل سره به مرسته او همکاري وکړي.



## مشوره

### خبرې پرې وکړئ

د انسان لپاره د بریالیتوب یوه لاره  دا ده چې په چاروکې له نورو سره مشوره وکړي. آیا کېدای شي له هر چا سره مشوره وشي؟

له کوم چا سره چې مشوره کوئ، باید د کومو ځانګړتیاوو درلودونکی وي؟

مشوره کول د نورو د عقل او تجربې څخه ګټه اخیستنه ده. داسې کسان ډېر دي چې کولای شي په ژوند کې موږ ته مشوره راکړي، خو د کورنۍ غړي  لومړني کسان دي چې باید له هغو سره مشوره وشي. د کورنۍ ماشومان که چېرې غواړي چې په لوست، لوبو او نورو داسې مسایلو کې تصمیم ونیسي باید  له مور او پلار سره مشوره وکړي او د هغوی له لارښوونو څخه ګټه واخلي. همدارنګه کله چې پلار او مور غواړي کوم تصمیم ونیسي، باید د کورنۍ له غړو سره مشوره وکړي او د هغو ی نظر واوري.

## نظم

### خبرې پرې وکړئ!

آیا داسې پېښ شوي دي چې د کتاب، کتابچې او یا د جرابو د ورکېدو له امله، ښوونځي یا کوم بل ځای ته ناوخته رسیدلي یئ؟ د دې لپاره چې له داسې ستونزو سره مخامخ نه شو څه باید وکړو؟

کیدای شي لیدلي مو وي چې ځینې کورونه ګډوډ او نا پاکه ښکاري. د دې ډول کورنۍ غړي په خپلو چاروکې نظم او یوه ښکاره کړنلاره نه لري. نظم د دې لامل ګرځي چې چارې په خپل وخت او په سمه توګه سرته ورسېږي. کله چې کارونه په سمه توګه سرته ونه رسېږي، د افرادو تر منځ ستونزې منځ ته راځي چې کېدای شي د هغوی قهر او غوسه را وپاروي او د هغوی اړیکو ته زیان ورسوي. له دې کبله په یوه کورنۍ کې ټول غړي باید منظم وي او د خپلو کارونو لپاره باید یوه منظمه کړنلاره ولري. د دې کار لپاره لازمه ده چې هر څوک د خپلو چارو لپاره یوه منظمه کړنلاره ترتیب او تنظیم کړي، دا کړنلاره کیدای شي ورځنۍ، اوونیزه او آن میاشتنۍ او له هغه څخه پورته وي.



### د لوست تکرار

- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------



### پوښتنې

۱. که چېرته موږ په کورنۍ کې ذمه واري ونه منو له کومو ستونزو سره به مخامخ شو؟

۲. په کورنۍ کې ګډ ژوند او یو له بل سره مرسته څه ګټې لري؟ بیان یې کړئ.

۳. مشوره څه شی ده او د کورنۍ د چارو په ښه والي او سمون کې څه رول لري؟



### کورنۍ دنده

خپلې کورنۍ ته ځیر شئ او وګورئ چې د ذمه وارۍ منښه، مرسته، مشوره او نظم تر کومه حده ستاسې په کورنۍ کې شته، د هر یوه لپاره که په لوړه کچه ۱۰۰ نومرې په نظر کې ونیسو، تاسې به څو نومرې خپلې کورنۍ ته ورکړئ؟

# څنګه کولی شو یوه بریالۍ کورنۍ ولرو؟ (۲)



## خبرې اترې وکړئ!

په تېر شوي لوست کې مو د بریالۍ کورنۍ ځینې ځانګړتیاوې وپېژندلې، سربېره پر هغې د یوې بریالۍ کورنۍ نورې کومې ځانګړتیاوې پېژنئ؟

### یو د بل درناوی:

تاسې په کورنۍ کې څنګه چلند کوئ ؟ آیا پلار، مور او د کورنۍ نورو غړو ته درناوی کوئ؟ له هغو څخه د کوم ډول چلند هیله لرئ؟

کله چې د چا درناوی کوو، نو هرو مرو هغوی هم زموږ درناوی کوي. په کورنۍ کې پلار، مور او اولادونه یو له بل ته درناوی او احترام کوي. په هغې کورنۍ کې چې غړي یې یو بل ته درناوی کوي، ټول غړي یې د شخصیت او هوساینې احساس کوي. د داسې کورنۍ غړي مؤدبه او مهربانه وي او په ټولنه کې هم د نورو سره دوستانه چلند لري. د دې ډول کسانو شتون په ټولنه کې د دې ښکارندوی دی، چې هغوی یوه ښه او بریالۍ کورنۍ لري.

## د نورو د نظریاتو زغمل

پوهېږو چې د افرادو سلیقې (ذوق او غوښتنه) یو له بل سره توپیر لري، که څه هم له یو ې کورنۍ څخه وي د بېلګې په توګه: ستاسې د علاقې وړ رنګ له هغه رنګ سره چې ستاسې  ورور یا خور یې خوښوي، توپیر لري. کیدای شي چې په نورو مسایلو کې  هم د  افرادو نظریات توپیر ولري. په یوه ښه کورنۍ کې هېڅکله د کورنۍ یو غړی پر نورو  خپل نظریات نه تحمیلوي په خاصه توګه مور او پلار چې په کورنۍ کې تر نورو زیات  واک او صلاحیت لري هڅه کوي ترڅو د خپلو اولادونو نظریات واوري او که  ناسم وي هغوی ته لارښوونه وکړي. دا کار د دې لامل ګرځي چې دا کورنۍ هم په ټولنه کې  د نورو نظریاتو ته در ناوی وکړي. هر څومره چې د دې ډول انسانانو شمېر په ټولنه کې زیات وي، کولای شو چې یوه سوکاله او باثباته ټولنه ولرو.

### خبرې پرې وکړئ!

د لاندې پوښتنو په باره کې یو له بل سره خبرې وکړئ.

۱.د خپلې کورنۍ د غړو د سر ښندنې څو نمونې بیان کړئ.

۲ .تاسې تر اوسه د خپلې کورنۍ  لپاره کومې سر ښندنې کړې دي؟

## سرښندنه او له ځانه تېرېدنه (فداکاري)

سرښندنه د انسانانو له غوره او ښو صفتونو څخه ده. انسان له هر شي څخه مخکې د خپلې کورنۍ لپاره سرښندنه کوي. د پلرونو او میندو چاروته که ځیرشئ، هغوی تل د خپلو اولادونو لپاره سرښندنه کوي. د بېلګې په توګه: هغه مور چې د شپې تر سهاره له  خپل ماشوم څخه څارنه کوي او هغه ته شیدې و رکوي یا هغه پلار چې په ډېر زیار سره د خپلې کورنۍ د ژوند لګښتونه پوره کوي دا د هغه سرښـندنه ده. په حقیقت کې کورنۍ ژوند د سرښندنې پر بنسټ ولاړ دی. د کورنۍ غړي هغه چلند او سلوک چې یو له بل سره یې  لري هغسې چلند له نورو سره نه لري، سرښـندنه په ټولنه کې زیات ارزښت لري. انسان د خپلو هېوادوالو او همنوعانو لپاره هم باید سرښندنه او له ځانه تېریدنه وکړي. هر انسان په هر ډول چې وي که د نورو لپاره سرښندنه وکړي خلك د هغوی درناوی کوي.



## د لوست تکرار

- ----------------------------------------------------------------------------
- ----------------------------------------------------------------------------
- ----------------------------------------------------------------------------
- ----------------------------------------------------------------------------
- ----------------------------------------------------------------------------



## پوښتنې

۱. په کورنۍ کې يو بل ته درناوی څه ګټه او اهميت لري؟

که چېرې په کورنۍ کې خپل نظر په نورو وتپو، څه ستونزې به رامنځته شي؟

۲.آيا په ټولنه کې بايد د نورو نظريات وزغمو؟

۳.ستاسې په آند سر ښندنه څه ته وايي؟ يو مثال يې راوړئ.



## کورنۍ دنده

په يوه پاڼه کې روښانه کړئ چې تاسې په کورنۍ کې د لويانو او کوچنيانو څنګه درناوی کوئ؟

# د دویم څپرکي لنډیز

• انسان په کورنۍ کې پیدا کیږي او د عمر تر پایه په کورنۍ کې پاتې کیږي. انسان تل کورنۍ او دکورنۍ د غړو عاطفي او مالي ملاتړ ته اړتیا لري.

• موږ په کورنۍ کې ډېر شیان زده کوو. هغه څوک چې د ښه ښېلو لاملونو له امله خپلې کورنۍ او مور او پلار څخه بې برخې دي، په نورو کورنیو کې ژوند کوي او د هغوی له مرستې او ملاتړ څخه ګټه اخلي.

• هغه کورنۍ په خپلو دندو کې بریالۍ ده چې له لاندېنیو ځانګړتیاوو څخه برخمنه وي:

د خپلو دندو په وړاندې د ذمه واري احساس وکړي.

یو له بل سره مرسته وکړي،

په چاروکې مشوره وکړي،

چارې یې منظمې وي،

یو بل ته درناوی وکړي،

او یو د بل نظریات وزغمي.

# دريم څپرکی

## ټولنيزې ډلې

- په دې څپرکي کې لاندې درسونه لولئ:
- ډله څه شی ده؟
- د يوه کس او ډلې ترمنځ متقابل اغېز.



# د ښېرکي موخې

له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې د دې ښېرکي تر لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي.

- په دې وپوهېږي چې انسان ټولنيز موجود دی،
- په ډلو کې د خپل غړيتوب په ضرورت وپوهېږي،
- د ډلو ډولونه و پېژني،
- په ډلو کې د غړيتوب گټې او زيانونه و پېژني،
- په ډلو کې د فعالو غړو په توگه گډون وکړای شي.



# ډله څه ته وايي؟



**پرتله يې کړئ او غور پرې وکړئ.**

په مخکېني څېرکي کې مو زده کړل چې کورنۍ لومړنۍ ټولنېزه ډله ده چې تاسې د هغې غړي ياست. خو د دې تر څنګ تاسې د نورو ډلو غړيتوب هم لرئ يا دا چې په را تلونکي کې په هغو کې غړيتوب ترلاسه کوئ، د بېلګې په توګه: د دوستانو، ټولګي، ښوونځي، ورزشي، هنري او وظيفوي ډلو کې. دغه ډلې يوه له بلې سره پرتله کړئ او د لاندې پوښتنو په هکله په ټولګي کې يو له بل سره خبرې وکړئ.

١. د يوې ډلې د غړيتوب شرطونه د بلې ډلې د غړيتوب له شرطونو سره څه ورته والی لري؟

٢. له دې غور او بررسۍ څخه څه پايله لاسته راوړئ؟

څرنګه چې د مخه مو ولوستل، انسان نشي کولای چې يوازې ژوند وکړي. انسانان د تل لپاره يو بل ته اړتيا لري او په دې دليل له يو بل سره تړلي دي او ټولنېزې ډلې منځته راوړي. ډلې په ټولنه کې د ځانګړو موخو او دندو په خاطر منځته راځي چې هر سړی د خپلو اړتياوو د تر سره کولو په خاطر، له هغو څخه په ځينو کې خپل غړيتوب مني، د دې لپاره چې څو تنه وکړای شي چې يوه ډله جوړه کړي، لږ تر لږه دوه شرطونه بايد موجود وي.

## ١- ګډې ځانګړنې

د هرې ډلې غړي بايد ګډې ځانګړنې ولري. د بېلګې په توګه د کورنۍ ډلې د غړو لپاره د فاميلي اړيکو درلودل، د ټولګي د ډلې لپاره، ټولګيوالي او په ورزشي ډله کې د يوه ټاکلي ورزش سره مينه او په هغه کې مهارت درلودل، شرط دي.

## ۲- متقابلې اړیکې

د ډلې بل مهم شرط دا دی چې د هغې د غړو ترمنځ متقابلې اړیکې موجودې وي، د بېلګې په توګه:

د کورنۍ په ډله کې موږ د خپل پلار، مور، خور او ورور سره اړیکې لرو. یو له بل سره مرسته کوو، یو بل ته لارښوونه کوو او د یو بل مختلفې اړ تیاوې پوره کوو.

د ټولګي په ډله کې موږ له نورو ټولګیوالو سره اړیکې لرو، د خپلو درسونو په هکله یو له بل سره خبرې اترې کوو، یو له بل سره مرسته کوو او یو له بل څخه لارښوونه غواړو. په ورزشي ډلو کې د ډلې له نورو غړو سره تمرین او مرسته کوو.

کله چې یو شمېر خلک د ګډو ځانګړنو په درلودلو سره په یوه ځای کې سره راغونډ شي او ګډ فعالیتونه سرته ورسوي او یو له بله سره نسبتاً ټینګې اړیکې ولري، ډله تشکیلېږي



## پرتله او ډلبندي يې کړئ!

په مخکنيو فعاليتونو کې چې تر سره مو کړل، څو ډلې مو يو له بله سره پرتله کړې او د هغوی تر منځ ورته والی او نژدېوالی مو بيان کړ؟ اوس کوښښ وکړئ چې دغه ډلې د هغوی ترمنځ د توپيرونو پربنسټ په دوو يا څو ډلو ډلبندي کړئ او وروسته بيا د خپلې ډلبندۍ لپاره خپل دليل بيان کړئ.

د ډلبندۍ له ډولونو څخه يو يې هم په لومړنيو او دويمو ډلو باندې د ډلې وېشل دي. په دې ډلبندۍ کې څو معيارونه بايد په پام کې ونيسو:

۱. په لومړۍ ډله کې د غړو شمېر معمولاً کم وي. په داسې حال کې چې په دويمه ډله کې د غړو شمېر اکثراً زيات وي.

۲. په لومړۍ ډله کې خلك د خپلو غړو په خاطر د ډلې غړي کېږي، په داسې حال کې چې په دويمه ډله کې خلك د ډول ډول اړتياوو د ترسره کولو لپاره د ډلې غړي کېږي.

۳. په لومړۍ ډله کې اړيکې دوستانه او عاطفي وي ليکن په دويمه ډله کې اړيکې رسمي او نسبتاً غير دوستانه وي. يادو شوو ځانګړنو ته په پام کې لرلو سره، هغه ډلې لکه د کورنۍ او دوستانو ډلې له لومړنيو ډلو څخه او وظيفوي او ورزشي ډلې د دويمې ډلې له جملې څخه شمېرل کېږي. د دې دوو ډلو ځانګړنې د راتلونکي مخ په جدول کې راغلي دي.



| ځانګړنه | لومړنی ډلې ( د دوستانو ډلې) | دویمې ډلې ( شغلي ډلې) |
|---|---|---|
| د غړوشمېر | د غړو شمېرې لږ دی | د غړ و شمېرېې معمولاً زيات دی. |
| موخه | خلك د ډلې د غړو په خاطر د هغې غړي شوي دي | د اړتياوو د پوره کولو او خدمتونو د تر سره کولو لپاره يې غړيتوب تر لاسه کړی وي |
| د اړيکو ډول | اړيکې يې وفادارانه ، دوستانه او عاطفي دي. | اړيکې نسبتاً رسمي او غير دوستانه دي. |



## د لوست تکرار

- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------



## پوښتنې

١. ډله څه شی ده؟
٢. موږ ولې ډله جوړوو؟
٣. په يوې ډله کې د غړيتوب لپاره کوم شرطونه لازم دي؟
٤. لومړنی او دويمې ډلې توضيح کړئ.
٥. د کومو ځانګړنو پر بنسټ سره کولای شو چې ډلې په لومړنيو او دويمو ډلو باندې ووېشو؟



## کورنی دنده

يو له هغو ډلو څخه چې تاسې يې غړيتوب لرئ، تر غورلاندې ونيسئ او ويې ګورئ چې د لومړنيو ډلو ځانګړنې د هغو په باره کې صدق کوي او که د دويمې ډلې ځانګړنې.

# د يو کس او ډلې متقابل اغيز



له تاسو څخه هر يو په زياتو ډلو کې غړيتوب لرئ چې د کورنۍ، دوستۍ، علمي، ټولګي، ښوونځي، ورزشي او هنري ډلې له هغې جملې څخه دي. آيا تر اوسه پورې مو له هغو ډلوسره د اړيکو په هکله چې تاسې يې غړيتوب لرئ، فکر کړی دی؟

## په يو سړي باندې د ډلې اغيز

## فکر وکړئ او ځواب ورکړئ

تاسې په ډول ډول ډلو کې غړيتوب لرئ. د هغو اړيکو په هکله چې له هر يوه سره يې لرئ، فکر وکړئ او جدول د هغوی په باره کې د نورو جملو په ليکلو سره بشپړ کړئ.

| د ډلې نوم | پر يو کس باندې د ډلې اغيز |
|---|---|
| کورنۍ | موږ په کورنۍ کې له يوبل سره ګرمې او دوستانه اړيکې لرو |
| دوستان | موږ کله کله خپل د وزګارتيا وختونه له دوستانو سره تېروو. |
| ټولګی | ځينې درسي ستونزې د خپلو ټولګيوالو په مرسته حل کوو. |
| ورزشي | د تر او تازه والي او روغتيا په خاطر له خپلې خوښې سره سم ورزش کوو. |
| هنري | د دې هڅه کوو چې د خپلې خوښې په هنري چارو کې پوهه پيدا کړو. |
| مذهبي | د قرآن کريم د سم تلاوت لپاره د قرآن د زده کړې په غونډو کې ګډون. |

د پوړتني فعالیت له تر سره کولو څخه مو دا ترلاسه کړل چې موږ له ډلو څخه د هرې یوې سره مختلفې اړیکې لرو او هغوی پر موږ باندې ډول ډول تاثیرات لري. کله کله موږ ته د چارو د سرته رسولو لارې چارې را ښيي، ځينې وختونه له موږ څخه ملاتړکوي او کله بیا د دې لامل کېږي چې له ځينو کسانو سره د دوستی احساس وکړو او له ځينو نورو سره بیا مخالفت وکړو. کله زموږ لپاره د ښښتن تعالی او د ژوند د نړۍ د زیاتې پېژندنې لامل کېږي، کله ډېر نوي اطلاعات زموږ په واک کې را کوي؛ کله د هغوی له تجربو څخه ګټه پورته کوو، کله موږ ته د سمې لارې د پیدا کولو په هکله لارښوونه کوي او کله د ټولنې په اداره کولو باندې تاثیر لري. په حقیقت کې موږ له دغو ډلو سره ژوند کوو او زموږ په ژوندانه باندې د دغو ډلو له تاثیراتو څخه انکار کول د منلو وړنه دي.

ډله او ډله ییز ژوند له ټولو مثبتو تاثیراتو سره سره چې په سړي باندې یې لري، کله، کله امکان لري چې منفي تاثیرات هم په ځان پسې ولري او د سړي ژوندانه ته د جدي ستونزو او زیان اړولو لامل وګرځي.

کله کله هغه ډله چې موږ یې غړیتوب لرو، موږ د غیر دیني ارزښتونو خواته وربولي، کله کله د نورو د انتقاد په وړاندې قهرجن غبرګون ښکاره کوي، کله کله له موږ څخه د داسې کار سر ته رسول غواړي چې هغه سم نه وي، کله په ډله کې نیوکه او پوښتنه نه منل کېږي او له موږ څخه دا غوښتنه لري چې بې له کوم فکر کولو د ډلې له دستورونو څخه پیروي وکړو.



متاسفانه په ټولنه کې ځینې ډلې موجودې دي چې غلط او ناوړه کارونه کوي، د بېلګې په توګه: ځینې زلمیان او نوي زلمیان چې ښه نه دي روزل شوي، د دې په ځای چې په ښو او ګټورو کارونو باندې بوخت شي او د خپلې کورنۍ او ټولنې لپاره خدمت وکړي، نشو او د نشه يي توکو استعمال ته مخه کوي. دوی ډلې جوړوي د ډول ډول بد کار یو ( انحرافاتو)، خطاګانو او ګناهونو لامل ګرځي. لکه څرنګه چې له پورتنیو مثالونو څخه څرګندېږي، په ډلو کې غړیتوب کیداشي چې پر موږ باندې هم مثبت اغېز ولري او هم منفي، په همدې دلیل د تنکیو ځوانانو او ځوانانو لپاره د ډلې ټاکل ډېر مهم دي، ځکه چې په دې ټاکنه کې غولېدل او اشتباه کول کیدای شي چې د هغوی د ژوند د تګ لارې د تغییر او یا هم د تباهي لامل وګرځي. ستاسې په نظر په دې ټاکنه کې له چا سره کولای شو چې مشوره وکړو؟



## په ډله باندې د یو کس اغېز

### فکر وکړئ او ځواب ورکړئ!

د هغې ډلې په هکله چې تاسې یې غړیتوب لرئ، فکر وکړئ او لاندې جدول د هغو په اړه د نورو جملو په لیکلو سره بشپړ کړئ.

| د ډلې نوم | په ډله باندې د یو کس اغېز |
|---|---|
| کورنی | له ستونزو سره د مخامخ کېدو په صورت کې دحل نوې لاره وړاندې کوو. |
| دوستان | له دوستانو سره د صداقت او ربښتینولی څخه کار اخلو. |
| ښوونځی | د ښوونځي کتابتون ته کتاب هدیه کول ( سوغات ورکول) |
| ورزش | د ډله ییزو تمرینونو په غونډو کې په منظم ډول ګډون کوو. |

د پورتني فعالیت له ترسره کېدو څخه مو زده کړل چې څرنګه یوه ډله په یو کس باندې اغېز اچوي، په همدې ترتیب یو کس هم په خپل وار سره کولی شي چې په یوه ډله باندې اغېز وکړي، د بېلګې په توګه: کله کله یو کس په یوه ډله کې د انسجام او زیات یو والي لامل ګرځي، کله کله له هغې څخه داسې ملاتړ کوي چې د ډلې د زیات پایښت سبب کېږي، کله کله دیوې طرحې په وړاندې کېدو سره، د هغې د پر مختګ لامل کېږي، کله کله د ډلې لپا ره په ښه توګه موخې ته د رسېدو سبب کېږي. له دې کبله ویلی شو چې د یوکس آغېز په ډله باندې هم لکه پر یو کس باندې د ډلې د آغېز غوندې دی چې له هغې څخه انکار کول د منلو وړنه وي.

د هغو ټولو مثبتو آغېزو سره سره چې یو کس یې پر ډله باندې کولی شي، کله کله امکان لري چې منفي آغېزې هم ولري. د بېلګې په توګه یو کس کولی شي چې په خپله رایه باندې په ټینګار سره، د ډلې یووالي ته زیان ورسوي، یا د خپلو دندو په ترسره کولو کې په سستی کولو سره، د ډلې په کار کې د ځنډ راوستو سبب شي. که چېرې تاسې د هغې ډلې غړي وئ چې په هغې کې داسې سړی هم غړیتوب ولري، څه ډول غبرګون ښکاره کوئ؟



## د لوست تکرار

۱- ------------------------------------------------------------

۲- ------------------------------------------------------------

٤- ------------------------------------------------------------

۵- ------------------------------------------------------------

٦------------------------------------------------------------



## پوښتنې

۱. کله چې د یوې ډلې غړي کېږو، ولې یې باید د غړو نظریې په پام کې ونیسو؟

۲. که چېرې د ډلو د نورو غړو نظریې زموږ سره مخالفې وي، موږ مجبور یو چې هغه ومنو او یا دا چې کومه بله لاره هم شته؟

۳. په هره ډله کې غړیتوب ګټور دی ؟ ولې؟

٤. ولې په هغو ډلو کې له غړیتوب څخه ډډه وکړو کوم چې بد، بد کارونه تر سره کوي ؟

۵. که چېرې یو ناوړه سړی د ډلې لارښوونه ترلاسه کړي، پدې صورت کې څه باید وکړو؟



## کورنۍ دنده

د خپلو دوستانو ډله په نظر کې ونیسئ او غور وربانديې وکړئ چې:

۱- تاسې په هغې کې څرنګه موقف لرئ؟

۲- د ډلې تصمیمونه د ډلې د ټولو غړو د نظریو پر بنسټ نیول کېږي او یا دا چې یو یا دوه کسه زیات له خپل صلاحیت او اختیار څخه کار اخلي؟

۳- آیا تاسو د غه ډله د خپل ځان لپاره ګټوره بولئ؟ ولې؟

# د ښځو لنډيز

• انسان ټولنيز موجود دی. هر سړی د خپلو اړتياوو د پوره کولو په خاطر، په مختلفو ډلو کې غړيتوب ترلاسه کوي.
• کله چې يو شمېر خلک د ګډو ځانګړنو په درلودلو سره په يوه ځای کې سره را غونډ شي، ګډ فعاليتونه سرته ورسوي او نسبتاً يو له بله سره ټينګې متقابلې اړيکې ولري، ډله ترې جوړېږي.
• که چېرې د ډلو د غړو شمېر لږ وي او د دوی ترمنځ اړيکې دوستانه وي، دغې ډلې ته لومړنۍ ډله ويل کېږي، خو که چېرې د ډلې د غړو شمېر زيات وي او اړيکې يې رسمي غونډې وي، نو دويمه ډله ورته وايي.

# څلورم څپرکی

## په افغانستان کې د ژوند ډولونه

**په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولئ:**

- کوچیان څه ډول ژوند کوي؟
- د کلیو او سېدونکي څه ډول ژوند کوي؟
- په افغانستان کې ښاري ژوند.



# د څپرکي موخې

له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې د دې څپرکي په لوستلو سره په لاندې موخو برلاسي شي.

- د کوچيانو او دهغو د ژوند کولو له طريقو سره آشنايي پيدا کړي.
- د کوچيتوب د ژوندانه ستونزې و پېژني.
- د کليو د اوسيدونکو د ژوندانه او ژوند کولو له څرنګوالي سره آشنا شي.
- د کليوالي ژوند ښېګڼې او ستونزې و پېژني.
- له ښاري ژوندانه سره آشنا شي.
- د خپل هېواد د ښارونو ستونزې و پېژني.





# کوچیان څرنګه ژوند کوي؟



## خبرې پرې وکړئ!

لاندې پوښتنې په ځیر سره ولولئ او په هکله یې خبرې وکړئ!

۱- تراوسه پورې مو د کوچیانو کېږدۍ لیدلې ده؟

۲- ستاسې په نظر کوچیان ولې له یوه ځای څخه بل ځای ته کډه کوي؟

۳- د کوچیانو کسب او کار څه شی دی؟

زموږ یو شمېر خلك د طبیعت په آزاده هوا کې د غرونو او دښتو په لمنو کې ژوند کوي. هغوی په کېږدیو کې اوسېږي. کېږدۍ هغه خېمې ته وایي چې د وزو له وژغنو څخه جوړېږي. کوچیان مالدار دي او ډول ډول کورني څاروي لکه: مېږې، وزې، اوښان، او خره ساتي. هغوی د خپلو څارویو د ساتنې په خاطر په څرځایونو پسې له یوه ځای څخه بل ځای ته ځي.کوچیان د کال په مختلفو فصلونو کې له تودو سیمو څخه سړو سیموته او د هغې بر عکس له سړو سیمو څخه تودو سیموته کډې کوي.

د کوچیانو په کورنیو کې، معمولاً زیات شمېر خلك ژوند کوي. د کوچیانو د کورنیو غړي په معمول ډول: مور، پلار، لوڼې، زامن، نیکه، نیا، نږیندې، لمسیان، توږۍ، ترونه او کاکاګان، وي.

د کورنۍ ټول غړي یو له بل سره په کارونو کې مرسته کوي.

د کېږدۍ د ننه کارونه په ښځو پورې اړه لري. د کېږدۍ د باندې کارونه د نارینه وو په غاړه وي. د کېږدۍ د ننه او د باندې کارونه د کورنۍ د غړو تر منځ وېشل شوي دي او هر څوک خپله دنده سرته رسوي، له معمول سره سم د کوچنیانو ساتنه، د څارویو د شیدو لوښل، د څارویو د محصولاتو برابرول، اخلی پخلی، د جامو او لوښو مینځل، د کېږدۍ د ننه او شاوخوا جارو کول او پاکول، له وېالو او یا چینو څخه د اوبورا وړل د ښځو دنده ده. خو د دې ترڅنګ ښځې او جینکیانې(نجونې) د لرګیو په را ټولولو، د شیانو په بارولو او د کېږدیو په درولو کې هم مرسته کوي، د یادونې وړ ده چې د ښځو، کارونه یې د نارینه و په نسبت درانده او زیات دي د کوچیانو نارینه دغه لاندې چارې سرته رسوي:

د څارویو څرول، د هغوی پلورل، او پېرودل، له ډاکوانو څخه د خپلو کېږدیو ساتنه، د لرګیو راټولول، د وریو او نورو حیواني محصولاتو خرڅول.

کوچیان خپلې کېږدۍ یو بل ته نږدې او په داسې ځایونو کې چې اوبو ته نژدې وي، دروي. دوي نسبتاً د لږ وخت لپاره په یوه ځای کې اوسېږي او کله چې د دوی کېږدیوته نژدې څرځایونه خلاص شي، له دې ځایه کوچ(کډې) کوي او په بل ځای کې کېږدۍ دروي. دوي معمولاً خپلې کېږدۍ د کلیوالو له آبادیو او کروندو څخه لیرې دروي چې د دوی څاروي د بزګرانو کښتونو ته زیان ونه رسوي.



## غور پرې وکړئ!

لاندې پوښتنې ولولئ او خبرې پرې وکړئ.

۱.کوچیان کومې ځانګړې ستونزې لري؟

۲.د هرې ستونزې لپاره کومه د حل لاره پیشنهادوئ؟

## د کوچیانو ستونزې

کوچیان د طبیعت په لمن کې ژوند کوي او تل د آزادې هوا او د طبیعت له ښکلومنظرو څخه خونداخلي. له دې سره سره هغوی په خپل ژوندانه کې له ډېرو زیاتو ستونزو سره مخامخ دي چې ځینې ډېرې مهمې یې دلته لولو:

### زده کړه

په دې دلیل چې کوچیان تل د حرکت او ځای بدلولو په حال کې وي، زیاتره یې ښوونځي نه لري او اولادونه یې د سواد له نعمت څخه بې برخې پاتې کېږي



## روغتیا او در ملنه

کوچیان د روغتیایي او در ملنې د امکاناتو له کمښت څخه سخت زوربږي. هغوی کوم ګرځنده کلینیک چې د دوی سره د لارې مل وي، نه لري. په دې دلیل چې هغوی اکثراً له ښار او کلیو څخه لرې خیمې وهي. په ډېرې سختۍ سره کولی شي چې د ښار او کلیو د روغتیایي کلینیکونو څخه ګټه واخلي.

## وچکالي او د وښو کمښت

کوچیان د وښو او څړ ځایونو په لټه کې له یوه ځای څخه بل ځای ته کډې کوي، له دې لارې څخه خپل څاروي روزي او خپل ژوند پرې تېروي. په هغو کالونو کې چې ورښت زیات او واښه پرېمانه وي، د دوی کار او ژوند ښه وي. خو په هغو کالونو کې چې ورښت لږ وي، دوی د خپلو څارویو د مړیدو په خاطر له زیاتو ستونزو سره مخامخ کېږي. په وچکالۍ کې د دې وېره شته چې د هغوی څاروي له لوږې څخه مړه شي چې په دې صورت کې هغوی ته نه جبرانیدونکي زیانونه رسېږي.

### د لوست تکرار

•------------------------------------------------------------

•------------------------------------------------------------

•------------------------------------------------------------

•------------------------------------------------------------

•------------------------------------------------------------

•------------------------------------------------------------

### پوښتنې

۱. ولې کوچیان په دښتو کې ژوند کوي؟
۲. د کوچیانو د کورنیو د غړو ترمنځ د کار وېش څرنګه دی؟
۳. کوچیان خپلې کېږدۍ چېرې او څه ډول دروي؟
٤. د کوچیانو د زده کړې ستونزې بیان کړئ.
٥. د کوچیانو روغتیایي ستونزې بیان کړئ.
٦. په وچکالیو کې د کوچیانو ستونزې بیان کړئ.

### کورنۍ دنده

د کورنۍ د لویانو په مرسته د کوچیانې ژوند ښېګڼې او ستونزې د کاغذ په یوه مخ کې ولیکئ.

# د کلیو خلک څرنګه ژوند کوي؟



**پرتله یې کړئ!**

په مخکېني لوست کې مو ولوستل چې کوچیان څرنګه ژوند کوي. اوس د کلي انځورته ځیر شئ او لاندي پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.

۱.د کلیو د کورونو او د کوچیانو د کېږدیو ترمنځ توپیرونه او ورته والي بیان کړئ.

۲.د کلیو اوسیدونکي په کومو کارونو بوخت دي او له کوچیانو سره څه توپیرونه او ورته والی لري؟

## د کلیو کورونه

زموږ د هېواد زیات شمېر خلک په کلیو کې اوسېږي. کلی د ښار څخه کوچني وي او د وګړو شمېر یې هم لږ وي. په زیاتره کلیو کې، کورونه یو بل ته نېږدې جوړېږي. خو په ځینو هغو کلیو کې چې په درو کې پراته وي، کورونه یو له بل څخه لږ څه لرې وي. د کلیو اوسیدونکي په ساده کورونو کې ژوند کوي چې زیاتره یې له تېرو اوخټو څخه جوړېږي. د کلیو په شاوخوا کې، باغونه او کرنېزې ځمکې وي چې د کلیو اوسیدونکي په هغو کې ترکاري، غنم او حبوبات کري او نیالګي پکې کېنوي. د کلیو اوسیدونکي د کرنې، باغدارۍ او مالدارۍ له محصولاتو څخه د خپل خوراک، پوښاک او د سون د موادو د اړتیاوو په پوره کولو کې کار اخلي او د ونو له لرګیو څخه د کورونو په جوړولو او تودولو کې کار اخلي.

## کورنۍ

کورنۍ په کلي کې ډېر اهمیت لري، کورنۍ سوچه د مینې او مهربانۍ ځای دی چې په هغې کې مور، پلار، لوڼې، زامن. نیا، نیکه او احتمالاً نور خپلوان یو ځای سره اوسېږي.
په معمولي ډول په کلیوالو کورنیو کې د غړو شمېر زیات وي. د کورنیو غړي په تصمیم نیولو کې یو له بله سره مشورې کوي او د کور د ننه او د باندې چاروکې یو له بله سره مرستې کوي.

## په کلي کې د خلکوترمنځ اړیکې

د کلیو خلک یو له بله سره ډېرې تودې او د مهربانۍ اړیکې لري. ټول خلک یو بل سره پېژني او د یو بل د کورنیو د غړو او ژوندانه له وضعیت څخه خبروي. د کلي خلک مېلمه د خدای ﷻ دوست گڼي او همدا وجه ده چې ډېرمیلمه پال دي او د خپل مېلمه لپاره ډېر په زړه پورې خواړه برابر وي. دوی د یو او بل په غم او ښادۍ کې سره شریک دي. کلیوال د یو او بل په ودونو کې گډون کوي. زوم او ناوی ته سوغاتونه ورکوي. په جشنونو او د اختر په ورځو کې یو د بل لیدو او اختر مبارکۍ ته ورځي او د کورنۍ د مشر درناوی کوي. دوی په کوچنیانو رحم کوي او خوشحالوي یې. په غم او مشکلاتو کې سره شریک دي او تر هغه ځایه پورې چې امکان ولري له هغه چا سره چې مشکلات ولري، مرسته کوي.

### غور پرې وکړئ!

۱. خلک په کلیو کې په کومو چارو بوخت دي؟
۲. د کلي ژوند د ښاري او کوچیاني ژوند په نسبت څه ښېگڼې لري؟
۳. د کلي خلک څه ستونزې لري؟

## کار او شغل

د کلي خلک زیاتره د کرنې،باغدارۍ او مالدارۍ په چاروکې بوخت وي. هغوی د غنمو، وریشو، جوارو، باقلیو او د هغو په څېر د نورو په کرلو سره خپلې خوراکي اړتیاوې پوره کوي. د نیالگیو په کینولو،باغدارۍ او په بازارکې د هغوی د محصولاتو د خرڅولو پواسطه خپلې نورې مالي نیمگړتیاوې پوره کوي. د ډول ډول څارویو په روزلو سره،د هغوی د شیدو او وریو څخه گټه ترلاسه کوي. خپل اضافي تولیدات بازارته وړي او خرڅوي یې.زموږ په کلیو کې خلک د کرنې او مالدارۍ په چاروسربېره ځینې نور کارونه هم کوي. د کلیو له ډېرو مهمو تولیداتو څخه ځینې یې: له غالۍ، ټغر، سطرنجۍ، جوال، بړستن، جرابو، دستکشو، جاکټ، خولۍ، کوښو، څپلۍ، ژۍ(منگۍ)، او د لرگیو ډول ډول لوښو څخه عبارت دي. د کلي هلکان او نجونې له دود او دستور سره سم د خپل مور او پلار کسب تعقیبوي او له کوچنیوالي څخه یې د هغوی تر نظر لاندې زده کوي.

## ګډ کارونه او اشر

په کلي کې ځينې کارونه په ډله ييزه توګه ترسره کېږي، خلک د اوبو د بندونو، پلونو او لارو جوړول، د ويالواو کاريزونو پاکول، د کرنې د حاصلاتو لوکول، په ژمي کې د لارو څخه د واورې پاکول او د دې په څېر نور کارونه په ډله ييزه توګه سرته رسوي. دغه ډول کارونه د کلي خلکو لپاره يو ډول تفريح هم شمېرل کېږي.

## وزګار وختونه

د کلي خلک د وزګار تيا او بيکارۍ وختونه يود بل ترڅنګ تېروي. کله چې هغوی وخت پيدا کړي يو د بل کره ځي او مجلسونه سره کوي. د زړه خواله سره کوي او يو د بل ستونزې او مشکلات سره بيانوي. د يو بل د خوږو او ترخو خاطرو څخه خبرېږي. ځوانان او تنکي ځوانان ډېر څه له لويانو څخه زده کوي.

## د کلي د خلکو ستونزې

د دې سره سره چې د کلي ژوند ډېر خوندونه او ښېګڼې لري چې په ښاري او کوچياني ژوند کې نشته، خو ډېرې ستونزې هم لري چې ځينې يې په لاندې ډول لولو:



### روغتيا

زموږ زياتره کلي چې له ښارڅخه لرې پراته دي، د روغتيا او درملنې د امکاناتو له کمښت سره مخامخ دي. ځينې وختونه د يوې ډېرې کمې او ساده ناروغۍ په خاطر له زياتو ستونزو سره مخامخ کېږي. له نيکه مرغه د عامې روغتيا وزارت د هڅو له برکته  په دې وروستيو کلونو کې دغه ستونزه لږه کمه شوې ده.

### ښوونځي او زده کړه

د دې سره سره چې د پوهنې وزارت د هېواد په ډېرو لرې کليو کې هم ښوونځي جوړکړي دي او د زده‌کړې خدمتونه وړاندې کوي، خو بيا هم د افسوس ځای دی چې زموږ په ځينو کليو کې تر اوسه پورې هم ښوونځي نشته، زيات ښوونځي ښوونکي او زده کوونکي يې پوره کتابونه، نه لري.

### د ځمکې، اوبو او د کرنې د وسايلو کموالی

لکه څرنګه چې د مخه وويل شول، کليوال زياتره د کرنې په چارو کې بوخت دي، خو د افسوس خبره دا ده چې زموږ زيات شمېر بزګران ياکمې ځمکې په واک کې لري، او يا پوره اوبه نه لري. که چېرې ځمکه او اوبه هم ولري، د کرنې پر مختللي وسايل يې په واک کې نه وي . له همدې کبله هغوی د هغه زيار او زحمت په نسبت چې وباسي يې، لږ محصول ترګوتو کوي.

### پېښې او طبيعي آفتونه

زموږ بزګران د پېښو او طبيعي آفتونو، لکه: زلزلې، سيلاب، طوفان او باد په وړاندې ډېر کمزوري دي. او د افسوس خبره دا ده چې هېڅ داسې ځای نشته چې هغوی د دې ډول زيانونو په مقابل کې بيمه کړي.

### ماينونه

په تېروکلونو کې زموږ په هېواد کې جنګ جګړې رواني وې. هغه ماينونه چې له هغې زمانې څخه پاتې شوي دي تر اوسه پورې خلک ګواښوي. د ماين پاکۍ مؤسسو په ډېر زيات زيار او زحمت ايستلو سره زياتې سيمې په ځانګړې ډول ښاري سيمې له ماينونو څخه پاکې کړې دي، خو په ځينو کليوالي سيمو او د لارو په شاوخوا سيمو کې تر اوسه پورې هم ماينونه شته چې د سيمې د اوسيدونکو او لارويو لپاره خطر ناک دي. هغه ځايونه چې په سره رنګ په نښه شوي دي، خطر ناک دي او خلک بايد له هغو ځايونو څخه لرې واوسي.

### د لوست تکرار

- ------------------------------------------
- ------------------------------------------
- ------------------------------------------
- ------------------------------------------

### پوښتنې

۱- د کليوالو د ګټې لاس ته راوړلو لاره څه ده؟

۲-که چېرې له کليوالو څخه يو څوک زيانمن شي، نور خلک له هغه سره څرنګه چلن کوي؟

۳-د کلي حاصلات په کوم ځای کې مصرفيږي؟

٤-د څو هغو کارونو نومونه واخلئ چې په کلي کې په ډله ييزه توګه ترسره کيږي.

٥-د کلي د خلکو ستونزې ووايئ.

### کورنی دنده

د کليوالو له ستونزو څخه يوه يې په پام کې ونيسئ او د هغې لپاره په يوه مخ کې د حل لاره پيدا کړئ.

# په افغانستان کې ښاري ژوند



## پرتله يې کړئ

په مخکېني لوست کې مو کليوالي ژوند و لوست. اوس د ښار تصوير ته ځير شئ او پوښتنو ته ځوابونه ووايئ.

۱-د ښار او کلي ترمنځ کوم توپيرونه او ورته والي وينئ؟
۲-تاسې په کوم يوه کې ژوند کول غوره ګڼئ؟ ولې؟

په تېرو لوستونو کې په افغانستان کې د کوچياني او کليوالي ژوند له طريقو سره آشنا شوئ. د ژوند بله طريقه، د ښاري ژوند طريقه ده. ښار هغه ځای دی چېرې چې زيات شمېر خلک يو د بل ترڅنګ استوګنه کوي او زياتره په اداري ،سوداګريزو او صنعتي چارو کې بوخت وي. په ښارونو کې کورونه يو بل ته نيږدې او د ښاري نقشې پر بنسټ جوړېږي. د ښاري کورونو په جوړولو کې د دغو موادو، لکه: پخو خښتو، اوسپنې، سيمنټو، قير او داسې نورو څخه کار اخيستل کېږي. له دې کبله په ښارونو کې زياتره کورونه په پاخه ډول جوړ شوي دي. زموږ په ښارونو کې ممکن داسې کورونه وي چې د اومو خښتو او د ښاري نقشې څخه پرته جوړشوي وي چې دغه کورونه د ښارجوړولو له اصولوخلاف جوړشوي دي.

### کورنۍ

د ښاري کورنيو د غړو شمېر له معمول سره سم د کليوالي او کوچياني کورنيو څخه لږ وي، ځکه په ښاري کورنيو کې زياتره ځوان اولادونه کله چې واده وکړي، له خپل پلار او مور څخه جلا کېږي او ځانته مستقله کورنۍ جوړوي. له بله پلوه، ښاري کورنۍ د کليوالي کورنۍ په نسبت لږ اولادونه لري. په يو شمېر ښاري کورنيو کې له معمول سره سم هم ښځه او هم مېړه د کور بهر کار کوي او د کور په چارو کې يو له بل سره مرسته کوي. پلار او مور هڅه کوي چې خپلو اولادونو ته د ژوند وسايل او د زده کړې مناسب شرايط برابر کړي.
د کورنۍ اولادونه هم د خپل مور او پلار درناوی کوي او هڅه کوي چې له هغو وسايلو څخه چې مور او پلار يې ورته برابر کړي دي په ښه توګه ګټه واخلي او د هغوی د زيار او زحمت څخه په عمل کې مننه وکړي.

## کار او شغل

لکه څرنگه چې متوجه شوي یاست د کوچیانو، کلیوالي او ښاري خلکو کار او شغل تر ډېرې اندازې پورې یوله بله څخه تو پیر لري. ښاریان زیاتره په اداري، سوداګرېزو او صنعتي چارو بوخت دي، څنگه چې د دولتي او غیر دولتي ادارو مرکزونه، سوداگریز مرکزونه او صنعتي کار ځایونه عموماً په ښار او د هغه په څنډو کې وي او د ښار یو شمېر اوسېدونکي د خپل کار ځای له مرکزونو سره نږدې ژوند کوي. کار په ادارو او کارخانو کې په ټاکلي وخت کې ترسره کېږي او کارگران او کارمندان باید د ټاکلي وخت په پیل کې خپلې دندې ته راشي او په ټاکلي وخت بېرته ولاړ شي. خلك د رخصتي په ورځو کې کار ته نه ځي.

## ټولنیزې اړیکې

سره د دې چې په ښار کې هر سړی له ډېرو خلکو سره سرو کار لري، خو له زیاترو سره یې گرمې او دوستانه اړیکې نه لري، بلکې یوازې د یو لږ شمېر هغو کسانوسره چې د کورنۍ غړي او یا نژدې دوستان یې وي، دوستانه او د مهربانۍ اړیکې ټینگوي. خلك په کار ځایونو، استوگنځیو، کوڅو او داسې نورو ځایونو کې یو له بله سره اړیکې ټینگوي، خو دغه ډول اړیکې معمولاً د دوی تر منځ د پایدارو اړیکو لامل نه گرځي. څکه چې هغوی د لږې مو دې لپاره د خپلو ډول، ډول اقتصادي، سیاسي او یا اداري اړتیاوو د لرې کولو په خاطر سره یو ځای شوي دي او کله یې چې اړتیاوې پوره شي، خپلې اړیکې پرې کوي.

### خبرې پرې وکړئ

لاندې پوښتنې په ځیر سره ولولئ او په هکله یې سره وغږېږئ.

۱-ستاسې په نظر په ښار کې ژوند کول، کومې ستونزې لري؟

۲-تاسې د هغو لپاره د حل کومې لارې پیشنهادوئ؟

## زموږ د ښارونو ستونزې

د نړۍ ښارونه داسې امکانات لري چې ښار له کلیو څخه متفاوت او بیلولی شي. که څه هم ټول ښارونه خپلې ځانگړې ستونزې لري، خو زموږ ښارونه د تېرو څو کلونو د جگړو په خاطر له خپلو خاصو او ځانگړو ستونزو سره مخامخ دي چې د ډېرو مهمو څخه یې ځینې دا دي:





### ۱- برېښنا

برېښنا په نننۍ نړۍ کې د ښار له ډېرو مهمو اړتیا وو څخه ده، ځکه چې د نوي ژوند زیاتره وسایل د برېښنا په واسطه کار کوي. په خواشینۍ سره چې د برېښنا کموالی او یا نشتوالی اوس زموږ د ښارونو له اساسي ستونزو څخه شمېرل کېږي.

### ۲- اوبه

نننې ښارونه د اوبو د برابرولو او وېشلو له پرمختللیو سیستمونو څخه برخمن دي. لیکن په خواشینۍ سره چې زموږ ښارونه د اوبو رسولو فعال سیستم نه لري. د افغانستان د ښارونو اکثر خلک له هغو ځاگانو څخه چې ډېر ژورنه دي او په خپلو کورونو کې یې کېندي، گټه اخلي په داسې حال کې چې د دغو ځاگانو اوبه غیر صحي دي او د خلکو د روغتیا لپاره ضرر لري.

### ۳- د خځلو او چټلیو مخنیوی

پوهېږو چې په ښار کې زیات شمېر خلک ژوند کوي. د دې شمېر خلکو د خځلو او ناپاکیو لیرې کول، و سایلو، کارگرانو او ښه مدیریت ( اداري) ته اړتیا لري. پرته له دې به دغه خځلې، ښارونه په یوه بوی ناک او چټل ځای باندې بدل کړي. په خواشینۍ سره چې زموږ ښاروالۍ له دې امکاناتو او مناسب مدیریت څخه بې برخې دی. او له همدې کبله ښارونه ډېر کثیف او چټل شوي دي



### ۴- هوا

د ښارونو هوا د زياتو، نقليه وسايطو او کارخانو له کبله چې د ښار په د ننه او يا د هغه په څنډوکې فعاليت کوي، ډېره ککړه وي؛ ليکن زموږ ښارونه له دې کبله چې خاورين دي، اکثره سړکونه او کوڅې يې د خاورو په دوړو هم ککړې دي.

### ۵- د اوسيدونکو زياتوالی

په ښارونو کې زيات شمېر وګړي ژوند کوي. د خلکو ډېروالی د ښار او سړکونو د ګڼې ګوڼې لامل ګرځي. همدا رنګه کله چې د ښار جمعيت ډېر زيات شي، د کورونو د کموالي او ګرانښت لامل هم ګرځي. په خواشيۍ سره چې زموږ يو زيات شمېر ښارونه د جمعيت د زياتوالي او د کورونو د کمښت سره مخامخ دي.



**د لوست تکرار**

- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------
- ------------------------------------------------------------



**پوښتنې**

۱- ښارڅه ډول ځای دی؟

۲- ښاري کورنی له کليوالي کورنيو سره کوم توپيرونه لري؟

۳- د ښاريانو اقتصادي ګټې (عايد) له کومو لارو څخه تر لاسه کېږي؟

٤- په ښار کې ټولنېزې اړيکې څرنګه دي؟

٥- د افغانستان د ښـارونو له ستونزو څخه، درې يې بيان کړئ.



**کورنۍ دنده**

د کورنۍ له لويانو سره مشوره وکړئ او له هغې وروسته په يوه مخ کې وليکئ چې ښاري ژوند څه خوندونه او نيمګړتياوې لري.

# د څلورم څپرکي لنډيز

- کوچيان د غرونو او دښتو په لمنو کې ژوند کوي.
- هغوی زياتره مالدار دي او په مختلفو فصلونو کې د څړ ځايونو په لټه کې له يوه ځای څخه بل ځای ته کډې کوي.
- کوچيان د زده کړې او روغتيا په برخه کې پوره ستونزې لري.زموږ د هېواد د خلکو زياته برخه کليوال جوړوي.
- د کليوالو اصلي دنده کرنه ده. هغوی مالداري او لاسي کارونه هم کوي. کليوال يو له بله سره ګرمې او دوستانه اړيکې لري او په کارونو کې يو له بله سره مرسته کوي.
- کليوال هم خپلې خاصې او ځانګړې ستونزې لري چې زده کړه، د ځمکې کموالی، وچکالي او طبيعي پېښې يې ډېرې مهمې ګڼل کېږي.
- زموږ يو شمېر خلک په ښارونو کې او سېږي.
- ښاري کورنۍ نسبتاً وړې وي.
- ښاريان زياتره په اداري او صنعتي چارو کې بوخت وي.
- هغه خلک چې په ښارونو کې اوسېږي اړيکې يې يو تر بله سره ډېرې رسمي وي.
- زموږ ښارونه د ستونزو سره مخ دي چې ډېرې مهمې يې: د برېښنا د کموالي، د اوبو د کموالي، د ځځلو ډېربښت، د هواککړتيا او د وګړو د زياتوالي څخه عبارت دي.